له پيغام پښتو ټي وي څخه

د حرم شريف خطبه

# د اسلام د خپريدلو لاملونه او اسباب

د. عبد الباري بن عواض الثبيتي

ژباړه: جمشيد حقيار





خپرونکي اداره:

أهل الحديث خپرندويه اداره

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

# د اسلام د خپرېدلو لاملونه او اسباب

لومړی خطبه

الحمدُ لله، الحمدُ لله الذي أرسلَ رسولَه بالهُدى للناس كافَّة، أحمدُه - سبحانَه - وأشكرُه على نعمةِ المُبشِّرات السارَّة، وأشهدُ أن لا إله إلا اللهُ وحدَه لا شريكَ له يحفَظُ عبادَه المُؤمنين ويُنجِّيهم إذا جاءَت الصاخَّة، وأشهدُ أن سيِّدَنا ونبيَّنا محمدًا عبدُه ورسولُه سلكَ بالأمةِ طريقَ الجادَّة، صلَّى الله عليه وعلى آله وصحبِه الذين رزقَهم الله نفوسًا عن كل شرٍّ صادَّة. أما بعد:

ځان او تاسي ته د الله تعالی د وېرې او تقوا سپارښتنه کوم، د الله تعالی وېره او تقوا له هرې بدۍ څخه امن او نجات دی، الله تعالی فرمايي :

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ). [آل عمران: ١٠٢]
اې مومنانو! له الله تعالی څخه په رښتني ډول و وېرېږئ، او په داسي حالت کي ځانونه مرګ ته وسپارئ، چي تاسي مسلمانان او غاړه اېښودونکي ياست.

خوشحاله کېدل، ښه ګمان او نېک فالي کول د اسلام له بنسټونو او په هر حال کي د مسلمان ښه او خوی دی، الله تعالی د ابراهيم عليه السلام پر ژبه فرمايي: (وَمَنْ يَقْنَطُ مِنْ رَحْمَةِ رَبِّهِ إِلَّا الضَّالُّونَ). [الحجر: ٥٦]
يعني يوازي ګمراه او لار ورکي خلک د خپل رب له رحمته نا اميده کېږي.

همدغه ښه ګمان او مثبت فکر په انسان کي توان او ځواک پيدا کوي، هغه عمل او کار ته هڅوي او بالآخره يې راتلونکی ورته روښانه کوي.

په هره اندازه چي په اسلامي خاورو کي د مسلمانانو مصيبتونه او ستونزي ډېرېږي، هغومره بايد دوی د الله تعالی لخوا د مرستي زېري ور ياد کړي، او دا د رسول الله ﷺ طريقه او سنت ؤ، هغه به خپلي نېک پالی او مثبت فکر سره ډېري ستونزي په لاسته راوړنو واړولي، او د دردونو پر ځای يې خلکو ته اميدونه او هيلي ورکولي.

### د اسلام د نشر او خپراوي وعده او وړاندوينه

دا چي د الله تعالی دين نشر او خپور سي، او کافران د اسلام په مبارک دين مشرف سي، دا د مومن په ژوندانه کي ستره خوشحالي او زېری دی.
د اسلام يوه نه بدلېدونکي ځانګړتيا په هر وخت او عصر کي ډېر ژر انتشار او خپرېدل دي، که هر څومره يې اتباع لږ سي، يا يې مرستندويان سستي وکړي، او يا يې هم دښمنان ډېر سي.
د اسلام په شروع او پيل کي مسلمانان په مکه کي يوه کوچنۍ او کمزورې ډله وه، دوی هلته له رنګارنګ عذابونو او سختيو سره مخامخ وه، خو په يو څو کلونو کي اسلام په ټوله عربي جزيره کي خپور سو، يو نوی جوړ سوی نسل د اسلام د نشر او خپرولو پيغام پر خپلو اوږو واخيست، او هغه يې په هر ډول سختۍ او آسانۍ، غرونو او دښتو کي تر نورو پوري ورساوه، په همدې وجه د اسلام ږغ خپور سو، خاوره يې پراخه سوه، او دې دين ته د تاريخ په پاڼو کي په بې ساري ډول

خلک په ډلو ډلو ننوتل، او دا د اسلام تر ټولو لويه معجزه ده، همدارنګه دا د الله تعالی د هغه وعدې تصديق کوي، چي مستقبل او راتلونکی به د دې دين وي، اسلام ځکه ډېر ژر خپرېږي، چي دا هغه دين دی، کوم چي الله تعالی د ټولو خلکو لپاره غوره کړی دی، او هغه يې د ساتني او خپرولو ژمنه کړې ده.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي :
(پر کوم ځای چي شپه او ورځ را پورته کېږي، هلته به اسلام ورسېږي، او الله تعالی به خامخا د عزتمند په عزت او سرلوړۍ سره او د کمزوري او ذليل انسان په کمزورۍ سره دا دين په ټولو ښارونو او کليو کي خپروي, د الله تعالی په عزت ورکولو سره به انسان په اسلام کي عزتمند او سرلوړی کېږي، او د هغه په ذلت او کمزورۍ ورکولو سره به انسان په کفر کي ټيټ او ذليله کېږي).

خلکو اسلام ځکه خوښ کړی، چي د حقوالي نښې او علامات يې ښکاره دي، روښانه حق دی، له جوړ فطرت او سالم عقل سره برابر دين دی، تاريکی يې په روښنايي واړولې، د خلکو زړونه يې خوشحاله کړل، او سيني يې پراخه کړې، الله تعالی فرمايي :(فِطْرَةَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ الله).[الروم: ٣٠]
يعني دا د الله تعالی هغه فطرت دی، چي ټول خلک يې پر همدغه فطرت برابر پيدا کړي دي، او د الله تعالی په پيدا کولو کي هيڅ بدلون نه راځي.

## اسلام د عقيدې او روح تسکين دی

اسلام ځکه خپرېږي، چي دا دين داسي پخه ايماني عقيده ده، چي د زړونو خالي والی او غوښتني پوره کوي، د روحونو وحشت او حيرانتيا له مينځه وړي، د فکر پوښتنو ته ځواب وايي، زړونو ته امن او آرامتيا ورکوي، او تنده يې ور ماتوي.
خلک د الله تعالی دين ته ځکه په ډلو ډلو ننوزي، چي دا دين انسان ته خپل کرامت او عزت ورکوي، انسان ته په روحي، جسماني، عقلي او قلبي ډول اوچتوالی ور بخښي، انسان ته يې ټوله نړۍ تابع کړېده، او پر هغه يې هيڅ پاک شی نه دی حرام کړی.

## اسلام فکر او علم ته وده ورکوي

راتلونکی او مستقبل ځکه د دې دين دی؛ چي دا دين پر انسانانو خورا ژور او ښکلی تاثير لري، او ډېرو لويو کارونو او عملونو ته بلنه کوي، دې دين انسان د ګناه له ټيټوالي ځخه د اطاعت عزت او سرلوړۍ ته ورساوه، هغه يې د دنيا له تنګۍ ځخه د آخرت همېشني اوږد ژوند ته برابر کړ، او سخت او کلک زړونه يې له ميني، پراخوالی او مهربانۍ ځخه ډک کړل.

اسلام په تېزۍ سره ځکه خپرېږي؛ چي هغه د علم، پوهني او علماوو درناوی کوي، د عقل او فکر کولو ستاينه کوي، کله چي اسلام يو هيواد او خاورې ته داخل سوی، هغه هيواد يې په علم او پوهې آباد او روښانه کړی، اسلامي امت د تاريخ په اوږدو کي د انساني حضارې او تمدن په جوړولو کي پوره برخه درلوده، او همدغه د مسلمانانو په لاس جوړ سوی تمدن د وروسته مينځ ته راغلو تمدنونو لپاره بنسټ او اساس ګڼل کېږي.

## اسلام د عدالت او ورورولی دين دی

خلک ځکه په اسلام کي آرام او هوسا دي؛ چي دي دين د بشريت لپاره د ژوند په ټولو برخو کي ټولنيز عدالت ساتلی دی، د ورورګلوۍ تارونه يې قوي کړي، د تعاون او يو بل سره مرستي کولو اساسات يې ژوندي کړي، او د ټولنيز خدمت هر ډول معناګاني يې په ځان کي نغښتي دي.
رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (که چيري يو مسلمان د خپل ورور د حاجت او اړتيا په پوره کولو کي ورسره ووزي، دا کار زما په دغه مسجد کي تر دوو مياشتو اعتکاف کولو غوره دی) – خپل په ګوته سره يې اشاره ورته وکړه.

په اسلام کي عدل او اعتدال قوي امر او پوخ اساس دی، اسلام په عدل کولو کي نسب، مرتبې، جاه او مال ته نه دي کتلي، بلکي په اسلامي خاورو کي هر اوسېدونکی – که مسلمانان دی او که غير مسلمانان – له عدل څخه ګټه اخيستلای سي، الله تعالی فرمايي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلَّا تَعْدِلُوا اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ). [المائدة: ٨]

### اسلام ته دعوت او بلنه د هر مؤمن وظيفه ده

پر اسلامي امت لومړی پر رسول الله ﷺ او بيا پر ټولو د ځکي هري برخي ته د اسلام نشر او خپرول لازم دي، الله تعالی فرمايي: (يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ). [المائدة: ٦٧]
يعني اې پيغمبره! هغه څه چي ستا د رب له لوري درته راغلي، نورو ته ورسوه.

او رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (زما څخه دا دين نورو ته ورسوئ، که څه هم يو آيت وي).

رسول الله ﷺ د اسلام د خپرولو لپاره له هري وسيلي څخه کار اخيستی، کله چي ابو ذر غفاري ﷺ اسلام قبول کړ، نو له هغه څخه يې وغوښتل، چي په بني غفار قبيله کي پاته سي، او هغوی اسلام ته دعوت کړي، همدرانګه کله چي طفيل بن عمرو الدوسي اسلام راوړ، هغه ته يې وويل: په خپله قبيله کي پاته سه، او په دوی کي اسلام خپور کړه.
نو معلومه سوه، چي مسلمان امر سوی، چي د اسلام د خپرولو لپاره به کار کوي، خو دا د ده دنده او مسئوليت نه دی، چي خلک په زوره په اسلام برابر کړي، الله تعالی فرمايي: (إِنْ عَلَيْكَ إِلَّا الْبَلَاغُ). [الشوری: ٤٨]
يعني پر تا يوازي رسول لازم دي.

په بل آيت کي فرمايي: (لَيْسَ عَلَيْكَ هُدَاهُمْ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ). [البقرة: ٢٧٢]
او هغه مسلمانان چي په غير اسلامي هيوادونو کي د سفير، يا محصل، يا سوداګر او يا هم کار کونکي په ډول اوسېږي، هغوی ته د اسلام د نشر او خپرولو مسئوليت تر نورو هم زيات متوجه دی؛ ځکه د اسلام د نشر مسئوليت او دنده تر ټولو دندو لوړه او غوره ده.

الله تعالی فرمايي: (وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِمَّنْ دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ).[فصلت: ٣٣]
او تر هغه چا بل څوک ښکلي خبره کوونکی دی، څوک چي د الله تعالی لاري ته بلنه او نېک عملونه کوي، او وايي: زه له مسلمانانو څخه يم.
او رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (که چيري الله تعالی ستا په وسيله يوه سړي ته هدايت وکړي، دا ستا لپاره تر سرو اوښانو غوره دی).

### د داعي غوره صفات د اسلام د خپرېدو ذريعه ګرځي

په پوره ټينګار سره ويلای سو، چې د دې امت د سلفو په لاس د اسلام په خپرولو کې تر ټولو ستر سبب او لامل د دوی په فتوحاتو کې د دوی پاک سيرت، په حکمونو کې عدل او د دوی لوړه دينداري، پرهېزګاري او استقامت وو، چې د دوی په سر کې د اسلامي فتوحاتو اميران او لښکر دي، دوی په حقيقت کې جنګ کونکي نه بلکې دعوتګران وه، هغه کسانو چې د اسلام په نشر کې يې برخه درلوده، د پاک او جوړ زړه او لوړو احساساتو لرونکي وه، او د دوی هر فرد د خير او مهربانۍ، ګټې او برکت سرچينه وه.

### د الله تعالی بندګانو!

د انسانانو تر غوږو پورې د قرآنکريم آواز رسول د اسلام په نشر او خپرولو کې تر ټولو زياته موثره وسيله ده، په لاندې آيت کې په مشرکانو د قرآنکريم پر اورولو تاکيد او ټينګار سوی، الله تعالی فرمايي: (وَإِنْ أَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ فَأَجِرْهُ حَتَّى يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْلَمُونَ). [التوبة: ۶]

### د اسلامي دعوت اسباب او وسائل

څوک چې د اسلام په نشر او خپرولو بوخت دي، هغوی ته معلومېږي، چې د اسلامي دعوت د خپرولو لپاره اوسنۍ رسنۍ، د تخنيکي پرمختګ وسائل او په دې لاره کې يې کارول څومره اهميت لري، که څه هم موږ د اسلام په نشرولو کې لټي او سستي کړېده، خو بيا هم الله تعالی زموږ لپاره دغسې موثر او فعاله رسنيز منبرونه په اختيار کې راکړي دي، او دا په هغه صورت کې چې د دې وسائلو کارونکي يې په نړېوال ډول د اسلام د غوره والي او آسانۍ د ښکاره کولو لپاره په ښه ډول وکاروي، او له همدې لارې د هغه چا مقابله وکړي، څوک چې کوښښ کوي، نړۍ ته د اسلام انځور غلط او ناسم وړاندې کړي.

### د اسلام خلاف درواغجن تبليغات

او دا ټولو ته معلومه ده، چې همېشه په ظالمانه او دروغجن ډول د اسلام د رنګ بدولو لپاره او د کارتوني انځورونو او لنډو ويډيوګانو له لارې په اسلام او مسلمانانو پسې د سخت دريځي او تروريستۍ د تهمتونو او تورونو د لګولو لپاره خورا زيات کوښښ روان دی، د دې لپاره چې خلک له اسلامي دين څخه و وېروي، او ورته ثابته يې کړي، چې اسلام د شک، وروسته والي، د پرمختګ ضد او کرکجني عقيدې لرونکی دين دی، خو دا هر څه به هيڅکله د اسلام روښانه حقيقت ته کوم ضرر او زيان ونه رسوي، هيڅکله به د اسلام تابعداران کمزوري نکړي، او وبه نسي کولای، چې د اسلام روښانه نور او اوچت ښايست تاريک کړي، الله تعالی فرمايي: (يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ). [الصف: ۸] يعني دوی غواړي چې په خپلو خولو سره د الله تعالی (د دين، اسلام او هدايت) نور مړ کړي، خو الله تعالی به حتما د کفارو د نه خوښولو (او مخالفت) سره سره، خپل نور پوره کوي (او تر ټولو ځايونو يې ورسوي).

او په بل آيت کې فرمايي: (وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَن يُتِمَّ نُورَهُ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ). [التوبة: ۳۲]

دوی په درواغو او بهتان سره په اسلام دا تور تړي، چې دا دین د توري له لاري نشر سو، حال دا چې اسلام هیڅوک نه مجبوره کوي، چې خپله عقیده واړوي، بلکې د حق او انصاف په قلم لیکل سوی تاریخ شاهدي ورکوي، چې اسلام د روښانه او پاخه دلیل، نرمۍ او عدل په وسیله نشر سو، الله تعالی فرمایي:)لَا إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَدْ تَبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ).[البقرة: ۲۵۶] . یعني په دین کې هیڅ زور او جبر نسته، (اوس هر چا ته) د هدایت او کوړوالي )لار معلومه شوېده.

په بل آیت کې فرمایي: (أَفَأَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتَّى يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ). [یونس: ۹۹]

الله تعالی دې زما او ستاسو لپاره قرآنکریم برکتمن وګرځوي، د هغه د حکمت څخه له ډک نصیحت او آیتونو څخه دې ما او تاسو برخمن وګرځوي، زما خبره همدومره وه، زه له الله تعالی څخه د ځان ستاسو او ټولو مسلمانانو لپاره د مغفرت غوښتونکی یم، تاسو هم له هغه څخه مغفرت و غواړئ، یقینا چې هغه ډېر زیات بخښونکی او پوره مهربانه دی.

**د. عبد الباري بن عواض الثبيتي**
**ژباړه: جمشید حقیار**
**د پیغام پښتو تلویزیون څخه په مننه**
**۲۲ /٤ /١٤٣٨ هـ**

